


د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست


# د ښوونکي کتاب
# د ټولنیزو لوستونو د تدریس لارښود
# پنځم ټولگی




د چاپ کال: ۱۳۹۶ هـ. ش.


د ټولنیزو لوستونو د تدریس لارښود
پنځم ټولگی





unicef
د هر ماشوم لپاره
برای هر طفل





**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د

روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د

تألیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د ټولنیزو لوستونو د تدریس لارښود

## پنځم ټولګی

**د چاپ کال: ۱۳۹۶ هـ.ش.**

**مؤلفان:**

- سرمؤلف نجیب الله « امین افغان»
- د سر مؤلف مرستیال محمد رفیق «مومند»
- پوهنیار محمد فاروق «عمرخیل»
- مؤلف غلام سرور «گلاب زی»
- مؤلف سید حبیب الله «ولیزاده»

**مسلکي اډیتور:**

- د سر مؤلف مرستیال قدیم شیرزی «بابکرخیل» د ټولنیزو علومو د بخش آمر.

**دیني ،سیاسي او فرهنگي کمیټه**

- حبیب الله " راحل "د تعلیمي نصاب د پراختیا په لوی ریاست کې د پوهنې وزارت سلاکار.

**د څارنې کمیټه:**

- دوکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معین
- دوکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
- سرمؤلف عبدالظاهر گلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس

**کمپوز او ډیزاین**

**رحمت الله غفاری**

الماس ظفری او **عبدالقاهر صمیمی**



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي — پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# بسم الله الرحمن الرحیم

## د پوهنې د وزیر پیغام

د لوی خدایﷻ ډیر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر ګاڼه یې سمبال کړ. ډیر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایي پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تألیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تألیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم یې چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې هڅه اوهاند خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برې د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم چې له ټولو پوهو مولفینو او د پوهنې د وزارت له اداري او فني کارکوونکو څخه چې د دغه کتاب په چمتو کولو کې یې زیار ایستلی او له ټولو ملي او نړیوالو بنسټونو څخه چې د درسي کتابونو د چاپ او ویش په برخه کې یې مرسته کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

دوکتور اسدالله حنیف بلخي

## سرليکونه


(لومړی) لوست ........ ۱
(دويم) لوست ........ ۳
(درېم) لوست ........ ۵
(درېم) لوست ........ ۵
(څلورم) لوست ........ ۷
(پنځم) لوست ........ ۹
(شپږم) لوست ........ ۱۱
(اووم) لوست ........ ۱۳
(اتم) لوست ........ ۱۵
(نهم) لوست ........ ۱۷
(لسم) لوست ........ ۱۹
(يوولسم) لوست ........ ۲۱
(دولسم) لوست ........ ۲۳
(ديارلسم) لوست ........ ۲۵
(څوارلسم) لوست ........ ۲۷
(پنځلسم) لوست ........ ۲۹
(شپاړلسم) لوست ........ ۳۱
(اوه لسم) لوست ........ ۳۳
(اته لسم) لوست ........ ۳۵
(نوولسم) لوست ........ ۳۷
(شلم) لوست ........ ۳۹
(يوويشتم) لوست ........ ۴۱
(دوه ويشتم) لوست ........ ۴۳
(درويشتم) لوست ........ ۴۵
(څلورويشتم) لوست ........ ۴۷
(پنځه ويشتم) لوست ........ ۴۹
(شپږ ويشتم) لوست ........ ۵۱
(اوه ويشتم) لوست ........ ۵۳
(اته ويشتم) لوست ........ ۵۵
(نه ويشتم) لوست ........ ۵۷
(ديرشم) لوست ........ ۵۹
(يو ديرشم) لوست ........ ۶۱

(دوه دیرشم) لوست ........ ٦٣
(درې دیرشم) لوست ........ ٦٥
(څلور دیرشم) لوست ........ ٦٧
(پنځه دیرشم) لوست ........ ٦٩
(شپږ دیرشم) لوست ........ ٧١
(اوه دیرشم) لوست ........ ٧٣
(اته دیرشم) لوست ........ ٧٥
(نه دیرشم) لوست ........ ٧٧
(څلویښتم) لوست ........ ٧٩
(یوڅلویښتم) لوست ........ ٨١
(دوه څلویښتم) لوست ........ ٨٣
(درې څلویښتم) لوست ........ ٨٥
(څلور څلویښتم) لوست ........ ٨٧
(پنځه څلویښتم) لوست ........ ٨٩
(شپږ څلویښتم) لوست ........ ٩١
(اوه څلویښتم) لوست ........ ٩٣
(اته څلویښتم) لوست ........ ٩٥
(نه څلویښتم) لوست ........ ٩٧
(پنځوسم) لوست ........ ٩٩
(یوپنځوسم) لوست ........ ١٠١

# (لومړی) لوست

**وخت** : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | ټولنه څه ته وايي؟ |
| **عمومي موخه** | **زده کوونکي دې د ټولنې په اړه معلومات تر لاسه کړي.** |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې.** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• له ټولنې سره به ا شنا شي.<br>• د ټولنې مفهوم به بیان کړای شي.<br>• له ټولنې سره به یې زړه ولګیږي. |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړین او مرستندویه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | لومړني فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل.<br>**د انګیزې پیدا کول**<br>ستاسو په فکر، ټولنه څه ته وايي؟ | ۱۰دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښاغلی ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره | - زده کوونکي د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي . | ۳۵دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| يي وليکي. | | |
| -کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي. | -کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي. | |
| - لوست تشريح کوي. | - په غور سره غوږ نيسي. | |
| -له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د ټولنې د ډولونو په اړه خبرې وکړي. | - په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي. | - ځوابونه ورکوي. | |
| - لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

١- ټولنه د انسانانو د ټولېدلو او د هغوی ترمنځ د ګډو چارو د سرته رسولو څخه منځته راځي.

٢- د دې ډلې ګډه موخه د علم او پوهې زده کول دي.

٣- د کرنې او مالدارۍ له لارې.

## اضافي معلومات

### ټولنه څه شی دی؟

ټولنه د خلکو يوه سازمان شوې ډله ده چې ټول په يوه ګډه سيمه کې سره ژوند کوي، او خپلې مهمې، لومړنۍ او ټولنيزې چارې يود بل په مرسته په ګډه سره حلوي، او په ګډه سره په ګډ فرهنګ کې د يو ټولنيز ځانګړي بنسټ پر نوم پيژندل کيږي.

## (دويم) لوست

**وخت** : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
| --- | --- |
| **د لوست موضوع** | **انسان او ټولنه** |
| **عمومي موخه** | **د انسان او ټولنې له اړيکو سره دې بلدشي.** |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي.<br>• د انسان او ټولنې د اړيکو اهميت به وپيژني.<br>• د انسان او ټولنې اړيکه به بيان کړای شي.<br>• د ټولنې له غړو سره به ښو اړيکو د ټينګېدو ليوالتيا پيدا کړي. |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| **د لوست اړين او مرستندويه توکي** | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحريري، تقريري... |

| لومړني فعاليتونه او د انګيزي رامنځته کول | لومړني فعاليتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| | **لومړني فعاليتونه**<br>سلام اچول او روغبړ ، د ټولګي تنظيم ، د حاظرۍ اخيستل ، د کورنی دندې ليدل ،د تير لوست څخه پوښتنې او له نوي لوست سره تړاو ورکول.<br>**د انګيزې پيدا کول**<br>ستاسو په اند ، انسان او ټولنه له يو بل سره څه اړيکې لري؟ | **۱۰دقيقې** |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| - ښاغلی ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يي وليکي. | - زده کوونکي د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي . | **۳۵ دقيقې** |

| | | |
|---|---|---|
| -کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>-له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د انسان او ټولنې د اړیکو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | -کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- هیڅوک په یوازې توگه خپلې اړتیاوې پوره کولی نه شي او د هرچا مرستو ته اړتیا لري.

۲- ټولنه کولای شي چې له تاسو سره د جسمي، عاطفي او مالي له مخې مرسته او ملگرتیا وکړي.

۳- لاس ترلاس سره ورکړو او د یوې ښې ټولنې د جوړولو په موخه کوښښونه وکړو.

## اضافي معلومات

**انسان او ټولنه**

موږ هریو که د ټولنې په هره خواکې ژوند کوو، د ټولنې یوه خاصه برخه یو، زموږ فکرونه، گومانونه، کړه وړه ویناوې،اوحتی د جامو د اغوستلو ډولونه، زموږ آداب او دودونه، زموږ د یوې ځانگړې ټولنې په یوه خاصه ډله پورې تړي. له نورو خلکو سره زموږ اړیکې او له نورو سره زموږ ملگرتیا او انډیوالي زموږ د موخو او فکرونو بیانوونکي دي، داچې موږ له چا سره ملگرتیا کوو او څوک د خپلې انډیوالۍ لپاره غوره کوو، په دې معنا ده چې موږ له هغوی سره د نظرونو یووالی لرو، یوه موخه ورسره لرو، په فکر کې ورسره مخالف نه یو او لاره مو یوه ده، نو ښه به دا وي چې که موږ د خپلو دوستیو او دښمنیو، اړیکو او د لار ملتیا ته په ژوره توگه وگورو او غور پرې وکړو، د روغو اړیکو، د ښې ملگرتیا او د روښانه ملگرتیا پر لور به زموږ لارښوونه وکړي.

## (درېيم) لوست

**وخت** : (**يو درسي ساعت**)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | ټولنيزې اړيکې |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې له ټولنيزو اړيکو سره دې بلدشي. |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** | زده کوونکي دي د لوست په پاى کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• د ټولنيزو اړيکو پر مفهوم به پوه شي.<br>• ټولنيزې اړيکي به بيان کړاى شي.<br>• له ټولنيزو اړيکو سره به مينه پيدا کړي. |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| **د لوست اړين او مرستندويه توکي** | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښاغلى ښوونکى د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د انګيزې د را منځته کولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۴۵ دقيقې |
| - ستاسو په فکر، آيا انسان کولاى شي چې له نورو سره د اړيکو نيولو پرته ژوند وکړي؟ | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟ | |
| - د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي. | - د نوي لوست سرليک ته پام اړوي. | |
| -د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غور سره غوږ نيسي. | |
| - وروسته څو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| -زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يي وليکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |

| | | |
|---|---|---|
| -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | -کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| - لوست تشریح کوي. | - په غور سره غوږ نیسي. | |
| -له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې دټولنیزو اړیکوو د اهمیت په اړه خبرې وکړي. | - په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي. | - ځوابونه ورکوي. | |
| - لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- هرڅومره چې زموږ اړیکې له نورو سره ډېرې وي په هماغه کچه به خپلې او د ټولنې اړتیاوې په ښه توګه پوره کړو.

۲- هیڅوک په یوازې توګه خپلې اړتیاوې پوره کولای نه شي ځکه چې یو د بل مرستې ته اړتیا لري.

۳- ژبه په بشري ټولنه کې د اړیکو نیولو ډېره مهمه وسیله ده. انسان د ژبې په وسیله کولی شي چې ډېر ستونزمند مفاهیم او احساسات نورو ته انتقال کړي.

## اضافي معلومات

### ټولنیزې اړیکې څه ته وایي؟

په پرمختللې نړۍ ټولنیزي اړیکې د ژوند د پایښت لپاره مهم توکي دي په لاندې ډول یې تعریفوو:

ټولنیزې اړیکې د دوو کسانو یا د څو ډلو ترمنځ اړیکې بیانوي، یا په بل عبارت ټولنیزې اړیکې د انسانانو ترمنځ یو له بل سره د متقابلو اړیکو ټینګول دي، دا اړیکې کېدی شي چې د دوستۍ په ډول وي او یا د دښمنۍ. د اړیکو ټینګول د هر انسان له ټولنیزو اړتیاوو څخه دي آن تردې ویلی شو چې د ټولنیز رفتار ښکاره کېدل د ماشوم د ژوند هغو لومړنیو میاشتو ته ورګرځي کله چې ماشوم خپله ټولنیزه خندا ښکاره کوي، په دې ډول خپله اړیکه د کورنۍ له غړو سره ټینګوي، له چاپیریال سره د ماشوم دغه حرکتونه ورځ په ورځ زیاتیږي، په پیل کې چې کوم خلک د ماشوم لپاره د ټولنې په توګه پیژندل کېدل محدود و چې د ماشوم مور او پلار وو.

د نن ورځې د غوښتنو سره سم لیدل شوي دي چې تنکي ځوانان، جنکۍ او هلکان زیاتره له ښو ټولنیزو اړیکو څخه خبرې کوي چې دا اړیکې د هغوی د ودې او پرمختګ لامل ګرځي، خو که چیرې د تنکیوځوانانو او ځوانانو دا فکري او عقیدوي ډول اړیکې چې وده او پرمختګ یې نه وي کړی منفي خواوې په کې ډیرې په سترګوکیږي. هر انسان سره له دې چې د هرډول مادي او معنوي اسانتیاوو څخه برخمن وي، تل دې کوښښ وکړي چې هروخت په ټولنه کې په ښه او صمیمي چلند سره خپلې سالمې ټولنیزې اړیکې لاپراخه کړي او پرته له اړیکو نه شي کولی چې یو کار هم سرته ورسوي.

# (څلورم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| د مطلبونو شرح | سرليکونه |
|---|---|
| سولې ته د ټولنې اړتيا | د لوست موضوع |
| زده کوونکي دي له سولې سره بلدتيا پيدا کړي. | عمومي موخه |
| زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• د سولې په مفهوم او سولې ته دټولنې په اړتيا به پوه شي.<br>• سولې ته د ټولنې اړتيا به بيان کړای شي.<br>• په ټولنه کې د سولې د ټينګښت لپاره به هڅه وکړي. | پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. |
| مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... | د لوست لارې چارې |
| کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... | د لوست اړين او مرستندويه توکي |
| تحريري، تقريري... | د ارزونې لارې چارې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي :<br>- څه فکر کوئ، سولې ته ولې اړتيا لرو؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يي وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي. | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| –له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د سولې د ګټو په اړه خبرې وکړي.<br>– د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– جګړو او ګډوډیو زموږ خلکو او هېواد ته ډېر مالي او ځاني زیانونه را اړولي دي، له دې کبله زموږ هېوادوال سولې ته ډېره اړتیا لري.

۲– په ټولنه کې د سولې او امن په ټینګښت سره د ماشومانو او ځوانانو زده کړو، ښوونې او روزنې ته لاره هواریږي.

۳– د سولې او امنیت په چاپیریال کې ټولنه د علم او پرمختګ پرلورې درومي.

## اضافي معلومات

### سوله، ټولنیزه اړتیا

د سولې فرهنګ د ژوند د ارزښتونو، اندونو، قواعدو، دودونو او چلندنو ټولګه ده او انساني حقونو ته په درناوي، د هرډول تاوتریخوالي او توپیر له منځه وړلو، رنګ، نژاد او توپیرونو ته په درناوي، د ژوند د چاپیریال په حمایت او ساتنه، ملي رایو او د حاکمیت د حق په رسمیت پیژندلو باندې متکي دی او په دې ترڅ کې ملتونو ته د هغو اخلاقو او چلندونو لارښوونه کیږي چې د تفاهم، متقابلې پوهې، زغم او د خبرو کولو په بنسټ ولاړ وي، په طبعي توګه، د دې لپاره چې دغه ارزښتونه په کور، ښوونځي، ټولنې او د ټولنیزو ډلو په ورځني ژوند کې په عملي چلندونو یا رفتارونو بدل شي، آړینه ده چې په ښوونځي کې زده کړې وشي. څرنګه چې دا نسل ځوان دی او په راتلونکي کې باید د ټولنې او طبیعت د تضادونو او د ټولنیزو ستونزو لپاره د حل لارې ومومي. له یوې خوا د هر زده کوونکي دا حق دی چې په ښوونځې کې د تاوتریخوالي، زور او د نا امنۍ څخه لرې په سوله ییز چاپیریال کې وده وکړي او وکولای شي چې روحي مهارتونه زده ، د ژوند او زده کړو شرایطو ته ښه والی وبښي، له دې سربیره، د ښوونځي دوره، د ژوند په اوږدوکې د شخصیت او روزنې د لوړتیا او ټولنیز ژوند ته د ننوتلو لپاره د چمتووالي او د مسؤولیت منلې مهال دی او د ښوونځي په دوره کې زده کړه د ټولو وختونو څخه غوره ده.

## (پنځم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د انسان حقونه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د انسان له حقونو سره بلدشي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د انسان د حقونو پرمفهوم به پوه شي.<br>• خپل او د نورو حقونه به بیان کړای شي.<br>• د نورو حقونو ته به په درناوی غاړه کیږدي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، انسان کوم حقونه لري؟ | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟ | ۴۵ دقیقې |
| - د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| -زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |
| -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>-له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | -کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

| - زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د یو بل د حقونو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - په ډلو ویشل کېږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
|---|---|---|

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د ژوند او حیات حق الهي ډالۍ ده. ټول انسانان دې د خپل ځان او د نورو د ژوند د حق په ساتنه او حفاظت کې کوښښ وکړي.
۲- هرڅوک حق لري چې زده کړې او په ښوونځیو او پوهنتونونو کې خپلې زده کړې پرمخ بوزي.
۳- د ژوند حق، د زده کړې حق، د مالکیت حق، د ګرځندوی حق، د کسب د انتخاب ازادي، د سالم چاپیریال د لرلو حق، مساوات، د خپلواکۍ حق او د بیان ازادي.

## اضافي معلومات

**د انساني حقونو بېلګې**

انساني حقونه هغه واکونه او ځانګړتیاوې دي چې الله (ج) د انسان د عزت او شرافت لپاره هغه ته ورکړي دي او هیڅوک نه شي کولی چې هغه له انسان څخه واخلي.
**آزادي:** د اسلام له نظره هر انسان نړۍ ته آزاد راغلی او د چا غلام نه دی.
**اتمام حجت:** د الله (ج) پروردګار د انسان یو حق دا دی چې الله (ج) هغه ته حق وښایي، کوهي او لاره وپېژني، دغه ډول حق د الله (ج) له لورې سرچینه اخیستې ده، له دې امله الله (ج) د پیغمبرانو او د اسماني کتابونو په را لیږلو سره اتمام حجت کړی دی او چاته پرته د اتمام حجت جزاء نه ورکوي.
**د واده حق:** د ښځې او مېړه انتخاب د انسان له حقونو څخه دی.
**له چاپیریال څخه ګټه اخیستل:** له چاپیریال څخه ګټه اخیستل د ټولو انسانانو حق دی او څوک نه شي کولی چې دغه حق له چا څخه واخلي.
**د پنا اخیستلو حق:** له فشار او سکنجې څخه د خلاصون لپاره د پنا اخېستلو حق د هرچا لپاره ثابت دی.
**د تجارت حق:** د انسان د منل شوو حقونو څخه یو د تجارت حق دی، څوک نه شي کولی دغه حق له چا واخلي.
**د تصمیم نیونې حق:** انسانان د خپل برخلیک د ټاکلو په برخه کې د رایې او انتخاب حق لري.
**د ژوند حق:** ټول انسانان د ژوند کولو حق لري.
**د ورورۍ حق:** یو له حقونو څخه چې په اسلام کې پیژندل شوی دی، د ورورۍ حق دی چې ډېر ارزښتناک دی.
**د الهی حرم حق:** د الهی حرم د مکې په اوسیدونکو پورې تړلی نه دی او ټول مسلمانان په هغې کې برخمن دي.
**د خوړو حق:** ټول انسانان په سالموخوړوکې برخمن دي او دا د بشر د طبیعي او فطري حقونو څخه دی.
**د حضانت یا د شیدو ورکولو حق:** پر مور او پلار باندې د ماشوم د شیدو ورکولو حق دی.
**د مهاجرینو حقونه:** د دښمنانو له خوا په ناحقه مهاجر شوي د خپل حق د لاس ته راوړلو لپاره د نظامي اقدام حق لري.
**انساني نور حقونه:** د قرآن د ایتونو له مخې په قضاء کې په عادلانه توګه د خپل حق اخېستل، د ظالم پروړاندې له ځان څخه د دفاع حق، د عبادت حق، د قصاص حق، د مالکیت، کور او وطن او داسې نور زیات حقونه شته دي.

## (شپږم) لوست

### وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | ټولنیز خدمتونه |
| عمومي موخه | زده کوونکي د ي له ټولنیزو خدمتونو سره بلدشي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د ټولنیزو خدمتونو پر مفهوم به پوه شي.<br>• ټولنیز خدمتونه به بیان کړای شي.<br>• له ټولنیزو خدمتونو سره به یې مینه پیدا شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، ولې ټولنه ټولنیزو خدمتونو ته اړتیا لري؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br><br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br><br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br><br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي<br>- په غور سره غوږ نیسي. | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| –له څو زده‌کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ټولنیزو خدمتونو په اړه خبرې وکړي.<br>– د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– په پخوا وختونو کې د انسان زیاتې اړتیاوې په کور او کلي کې پوره کېدلې.

۲– ولې ورو ورو او د ژوند د طریقو په بدلون سره د ټولو اړتیاو یوو کول د کورنیو له توان څخه ووتل او د دې اړتیاوو د پوره کولو دنده ځانګړو ادارو ته چې دنده یې خلکو ته د ټولنیزو خدمتونو وړاندې کول دي وسپارل شوه.

۳– ښوونه او روزنه، عامه روغتیا، ترانسپورت او داسې نور.

## اضافي معلومات

اړینه ده چې د ټولنیزو خدمتونو مفهوم په لنډ ډول روښانه کړو چې له دې لارې وکولی شو په اسانۍ سره د موضوع موخه پیدا کړو.

څرنګه چې پوهیږو د «ټولنیزو خدمتونو» اصطلاح د دوو کلمو (ټولنیز) او (خدمتونو) له ترکیب څخه چې د خدمت جمع ده جوړه شوې ده، د لغت په کتابونو کې د خدمت لپاره بېلابېلې معناګانې بیان شوې دي چې ځینې یې د یوچا لپاره کار کول، ډالۍ، تعظیم، عریضه ده، لومړنۍ معنا یعنې د «یوچا لپاره کار کول» زموږ په فکر له دې ځای سره مناسب ده.

د پای خبره داده چې په« اسلام کې د ټولنیزو خدمتونو» مفهوم روښانه او هراړخیز دی چې د ټولنیزو ځانګړیو ډلو، لکه: یتیمانو، د پاخه عمرخاوندانو، خپلوانو، فقیرانو، مظلومانو، ناتوانو، پوروړو، زیانمنو، مهاجرینو او... لپاره ځانګړی اهمیت لري.

# (اووم) لوست

## وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | ښوونه او روزنه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي له ښوونې او روزنې سره بلدشي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>• د ښوونې او روزنې په مفهوم به پوه شي.<br>• د ښوونې او روزنې ګټې به بيان کړای شي.<br>• له ښوونې او روزنې سره به يې مينه پيدا شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسوپه فکر، ښوونه او روزنه څه ګټې لري؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يي وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي<br>- په غور سره غوږ نيسي. | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| - له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ښوونې او رزونې په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- بنسټونه، لکه: وړوکتونونه، ښوونځي، پوهنتونونه او نور ښوونیز مرکزونه جوړ شول.

۲- ښوونځي، مدرسې، دارالمعلمینونه او... د پوهنې په وزارت او پوهنتونونه د لوړو زده کړو په وزارت پورې تړلي دي.

## اضافي معلومات

**له روزنې سره د ښوونې مقایسه:**

۱- روزنه یو پراخ او روان بهیر دی چې یوځه په اوږد مهال کې ترسره کیږي، خو ښوونه د ښوونکي محدودو او خاصو فعالیتونو ته ویل کیږي.

۲- د ښوونځیو اصلي موخه د خلکو روزنه ده او زده کړه د روزنې وسیله ده نو هرکله چې یو روزنیز بهیر په لاره اچول کیږي، دا بهیر د زده کړې په مرسته ترسره کیږي، ځکه چې پرته د ښوونې او روزنې لاس ته نه راځي.

۳- روزنه یو پراخ او دوامداره بهیر دی، چې عمومي او وروستۍ موخې لري او موخه یې وروسته لاس ته راځي، خو زده کړه یو مشخص او دقیق فعالیت دی، چې موخې یې مشخصې، دقیقې او په لنډه موده کې ترلاسه کیږي. دې مطلب ته په پام سره، د نظر خاوندان د روزنیزو موخو لپاره د روزنیزو موخو اصطلاح کاروي او د ښوونیزو موخو اصطلاح ښوونې ته ځانګړې کوي.

۴- ښوونه معمولاً د ښوونکي له خوا په ټاکلي ځای، لکه: په ټولګي کې ترسره کیږي. خو په روزنه کې ، د ښوونځي، ټول عوامل (له ښوونکي نیولې تر مدیر) او له ښوونځي څخه بهر عوامل، لکه: (پلار، مور، مسجد ډله ییزې رسنۍ، انټرنټ او داسې نور) اغیزمن دي.

## (اتم) لوست

**وخت : (يو درسي ساعت)**

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | عامه روغتيا |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي د عامې روغتيا په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>• د عامې روغتيا په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>• د عامې روغتيا خدمتونه به بيان کړای شي.<br>• د خپل ځان د روغتيا او سلامتيا ساتلو او د خپل ژوند چاپېريال ته به يې پام شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، کوم کوم شيان د ناروغيو لامل ګرځي؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يې وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي. | ۴۵ دقيقې |

| – له ځو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د عامې روغتيا د دندو په اړه خبرې وکړي.<br>– د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| --- | --- | --- |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– د عامې روغتيا وزارت د ماشومانو د ناروغيو د مخنيوي او وقايې لپاره د فالج، چيچک(دانې) شري، تيتانوس...واکسيونونه کوي.

۲– تر ځو ماشومان د ناروغيو پر وړاندې وقايه شي.

۳– بايد موږ ټول خپلې جامې، کور کوڅه، ښوونځی او د ژوند چاپېريال پاک وساتو او خځلې په ټاکلي ځای کې واچوو تر ځو په بېلابېلو ناروغيو اخته نه شو.

## اضافي معلومات

### روغتيا

په افغانستان کې د روغتيا د خپرولو بنسټ د عامې روغتيا وزارت دی. دا وزارت هر کال د هېواد د اوسيدونکو د ښوونې او روزنې، وقايې او د درملنې لپاره دپرلګښتونه کوي.

د عامې روغتيا وزارت تاريخچه داعليحضرت محمد نادر شاه په وخت کې د طبيه مستقل مديريت يوځل بيا پرانستل شو، په ۱۳۱۳ هـ.ش. کال کې دغه مديريت د ( صحيي مستقل رياست) په نامه بدل شو، په ۱۳۲۴ هـ.ش کې دغه رياست د روغتيا وزارت ته اوچت شو او په کابل او ولايتونو کې يې د روغتيا په برخه کې اغيزناک فعاليتونه ترسره کړل.

اوس د طبي اړتياوو د روغتيايي بنسټونو د پراخوالي له کبله په هر ولايت کې د عامې روغتيا د رياست په نامه منظم مرکزونه جوړ شوي دي او د روغتيايې چارو منظمه کارونه کوي.

نن ورځ د هېواد په مرکز او ولايتونو کې ډېر روغتيايي کلينکونه او روغتونونه په رسمي او خصوصي توګه جوړ شوي دي خو بيا هم د هېواد په لريو پرتو سيمو کې د روغتيايې خدمتونو کمښت شته.

# (نهم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | اوبه رسول |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي د څښلو د صحي اوبو له څرنګوالي سره بلد شي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>• د څښلو د اوبو په صحي ځانګړتياوو به پوه شي.<br>• د څښلو صحي اوبو چمتوکول به بيان کړای شي.<br>• د څښلو صحي اوبو څخه به ګټه واخلي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، اوبه ولې تصفيه کيږي؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يې وليکي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>- کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي. | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| - له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د څښلو د اوبو د اړتیا په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- اوبه رسول یوه شبکه یا اداره ده چې د چینو، سیندونو او د ځمکې لاندې اوبه د ځانګړیو ماشینونو په واسطه په یوه ځای کې زېرمه کوي، د پاکولو او صحي کولو څخه وروسته یې د بمبو او نلونو په واسطه د سیمې خلکو ته ویشي.
۲- د ماشومانو د مړینې او دهغې سیمې د خلکو د ډول ډول ناروغیو لامل ګرځي.
۳- د ځمکې لاندې اوبه ګنده او ککړوي.

## اضافي معلومات

### د اوبو ککړیدل څه ته وایي؟

د اوبو په فزیکي، کیمیاوي او بیولوژیکی خواصو کې نامطلوب بدلون ته د اوبوککړیدل واي. اوبه د ژوندیو موجوداتو یو له مهمو او بنسټیزو عاملونو څخه دي، له دې کبله له ککړیدلو څخه د هغې ساتل هم مهم او د پام وړ دي. د اوبو د ککړیدلو لاملونه ډېر دي چې هم د ځمکې لاندې اوبه او د ځمکې پرمخ اوبه ککړې کړي.

**د ځمکې د لاندې اوبو د ککړیدلو لاملونه:**

۱- کاني (معدني) مواد: هغه کاني مواد چې د ځمکې په پاسنۍ برخه کې پراته وي د ځینو بدلونونو او اغیزو له کبله د ځمکې د لاندې اوبو د ککړیدلو لامل کیږي.
۲- په ښارونو کې د تشنابونو د اوبو زېرمې چې د ځمکې لاندې اوبه ککړوي.
۳- د راډیواکتیویتي موادو ضایعات د ځمکې لاندې اوبو د ککړتیا له مهمو لاملونو څخه دي، پردې برسېره د ځمکې لاندې ټولې هستوي چاودنې د ځمکې لاندې اوبو د ککړتیا لامل ګرځي.

**د ځمکې د پاسه اوبو د ککړتیا لاملونه:**

۱- صنعتي ککړونکي یا ډېر صنعتي ضایعات په اوبو کې ژوندي، ژووته ستر زیانونه اړوي. دغه ضایعات په اوبو کې حل شوي اکسجن تخریبوي چې د آبي ژوو د اړتیاو اکسجن د لږوالي لامل کیږي او هغوی وژني.
۲- د کورونو مستعملې اوبه چې (د لوښو ، جامو، موټرو، فرشونو د پریمنځلو...) څخه راوځي او د ځمکې د سر د پاکو اوبو سره یوځای کیږي او خپلې ککړتیاوې ور سره ګډوي، که مخه یې ونه نیولی شي د زهري توکو په ډول هغو ژوو ته چې په اوبو کې ژوند کوي ډېر لوی زیانونه رسوي او له مینځه یې وړي.

## (لسم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | برېښنا |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي له برېښنا سره بلدشي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>• د برېښنا په ګټو به پوه شي.<br>• د برېښنا د ګټو او زيانونو په اړه به څرګندونې وکړای شي.<br>• د برېښنا له نعمت څخه به پرځای ګټه واخلي او له خطرونو څخه به يې ځانونه وساتي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونه له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، برېښنا څه ګټې لري؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يي وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي. | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| – له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د برېښنا د خطرونو څخه د ځان ژغورنې په اړه خبرې وکړي.<br>– د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>– لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– ځوابونه ورکوي.<br>– د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱– د رڼا په تولید، دکور په سامان، په صنعت، په تجارت او نورو کې ورڅخه ګټه اخېستل کیږي.

۲– د برېښنا جریان.

۳– برېښنا د سیم او کېبل په واسطه نورو ځایونو ته انتقالیږي.

## اضافي معلومات

**د برېښنا اهمیت**

په پرمختللو هیوادنو کې کومه معجزه یا جادو نه ده شوې چې یو وار یې دغومره پرمختګونه او تکنولوژۍ لاس ته راوړي وي. دا د کوښښونو او زیارو پایله ده چې د پیدایښت څخه تراوسه پورې د بشر د لاس جوړ شوي وسایل دي چې د تکنالوژۍ نوم یې ورکړی دی او مخکې له مخکې یې د نن ورځې د بشر په مادي معنوي، اقتصادي او آن په فکري او اخلاقي کولو کې ګټور او ښکاره رول لرلی دی.

# (یوولسم) لوست

**وخت** : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | مخابرات |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي له مخابراتو سره بلدشي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>• د مخابراتو له خدمتونو سره به آشنایي پیدا کړي.<br>• مخابراتي خدمتونه به بیان کړای شي.<br>• له مخابراتي خدمتونو څخه به معقوله ګټه ترلاسه کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، څرنګه کولی شو چې له خپلو دوستانو سره په دنته او بهرکې اړیکې ټینګې کړو ؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ آواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره يي ولیکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| - لوست تشریح کوي.<br>- له ځو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې په هیوادکې د مخابراتي وسایلو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- لکه: تیلفون، تلګراف، فکس، موبایل...

۲- کمپیوټر یو عصري ماشین دی، کولای شي چې د بشر بې شمېرې اړتیاوې پوره کړي او کولی شي چې په خپله حافظه کې هرډول معلومات وساتي چې د اړتیا په وخت کې ورڅخه کار واخلي.

۳- د فکس ماشین د مهمو او ضروري اسنادو په لیږلوکې ډېرې اسانتیاوې منځته راوړي دي.

## اضافي معلومات

**مخابرات څه ته وایي؟**

د خبرونو او معلوماتو د لیږلو ټولې هغه چارې او فعالیتونه چې د تیلفون د دستګاه، تلګراف، فکس او داسې نورو پورې تړلې وي، مخابرات بلل کیږي.

اړیکي نیول په نن ورځې پورې تړلي نه دي، بشر تل د تاریخ په اوږدوکې له نورو سره په اړیکو نیولو کې اړین و او د بېلابېلو لارو څخه یې دغه اړتیاوې پوره کړې دي. انسان د ژبې په وسیله کولی شي چې هرډول اسان او ستونزمن مفاهیم او احساسات نورو ته انتقال کړي. که بشر نه شوای کولی چې په خپله خوښه باندې نور پوه کړي پرمختګ یې نه شو کولی.

نن ورځ بشر د خپرونو او معلوماتو د لیږدولو لپاره د ډول ډول وسایلو او اسانتاو څخه ګټه اخلي، د اړیکو نیولو نوي وسایل او اسانتیاوې له موږ سره مرسته کوي چې خپل کارونه په ښه توګه او په چټکۍ سره ترسره کړو، نن ورځ د راډیو، تلویزیون، انټرنټ، ګرځنده تیلفون، تلګراف، مصنوعي سپوږمکۍ او له بریښنالیک پرته انسان د ډېرو ستونزو سره مخامخ کیږي. زموږ په هېواد کې د مخابراتو او معلوماتي تکنالوژۍ په نوم وزارت چې مخکې د مخابراتو د وزارت په نامه یادیده شته چې د لاندې موخو لپاره کار کوي:

- د هېواد په کچه مخابراتي خدمتونو ته د خلکو لاس رسي.
- د تبعیض پرته اپریترانو بازار ته د مخابراتي خدمتونو د وړاندې کوونکو لاس رسی.
- د هېواد په کچه د خدمتونو د کمیت او کیفیت د ارتقا په موخه د مخابراتي مارکیټ تقویه کول.

# (دولسم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | پستي خدمتونه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي له پستي خدمتونو سره بلدشي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>• په پستې ګټو به پوه شي.<br>• پستې خدمتونه به بيان کړای شي.<br>• له پست سره به مينه وښايي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، څرنګه کولی شو چې له يو ځايه څخه بل ځای ته ليک واستوو؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ آواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يي وليکي.<br>- کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکي دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>- کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي. | ۴۵ دقيقې |

| -کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | -کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
|---|---|---|
| - لوست تشریح کوي. | - په غور سره غوږ نیسي. | |
| - له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د سپکو او درندو صنایعو د محصولاتو په اړه په خپلو منځو کې خبرې وکړئ. | - په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- درانده صنایع د اوسپنې د تولید کارخانو ، درندو ماشینونو جوړونې او کیمیاوي صنایعو ته چې زیاتې پانگې ته اړتیا لري او د تولید بېلابېل پړوانه ترسره کوي.

۲-سپک صنایع له هغو صنایعو څخه عبارت دي چې تولیدات یې لږ وزن ولري انتقال یې اسان او مستقیماً د خرڅلاو بازار ته وړل کیږي.

۳- زموږ په هېواد کې د درندوصنایعو یوازنۍ کارخانه د کابل جنگلک کارخانه ده چې د مستعملو اوسپنوپه ویلې کولوسه یې اوسپنیز وسایل تولیدول اوس یې د بیا رغونې کار روان دی . هکمدارنگه د زړو اوسپنونوری څو کارخانې هم په هېواد کې فعالیت کوي ډول ډول گاډر او د وطنوالو نور داړتیا وړ توکي تولیدوي.

## اضافي معلومات

صنعت د هر هېواد د اقتصاد مهمه برخه جوړوي. صنعتي تولیدات په واقعیت کې د ټولنې د اسوده گۍ لپاره د طبیعي موادو گډول ، ترکیب او تولید دی. هر څومره چې یوهېواد پرمخ تللی صنعت ولري هغومره به د هېواد ملي عواید زیات او دهغو روغتیایي ، فرهنگي او تعلیمي امکانات ښه او زیات وي.

# (یوڅلویښتم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **تور او رنګه فلزات** |
| **عمومي موخه** | **زده کوونکي دي د تورو او رنګه فلزاتو په اړه معلومات ترلاسه کړي.** |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>• د توروا و رنګه فلزاتو د صنا یعو سره اشنا شي.<br>• د تورو او رنګه فلزاتو صنایع یوله بل څخه تفکیک کړي .<br>• باوري شي چې د تورو او رنګه فلزاتو صنایع د هېواد په اقتصاد کې رغنده رول لري. |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړین او مرستندویه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۴۵ دقیقې |
| - ستاسو په اند ، زموږ په هېواد کې له تورو او رنګه فلزاتو څخه څه ګټه اخیستل کیږي؟ | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟ | |
| - د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| - د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غور سره غوږ نیسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |

| | | |
|---|---|---|
| -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د تورو او رنګه فلزاتو د صنایعو د ارزښت په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کېږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د هېواد د اوسپنې سترکان د بامیانو د ولایت د حاجیګک کان دی چې دا کان ښه جنسیت او ډېره زېرمه هم لري.

۲-زموږ په هېواد کې رنګه فلزات لکه: مس، المونیم، سپین زر، سره زر، نکل، قلعي، سرب او داسې نور شتون لري.

۳- زموږ په هېواد کې د مسو سترکان د لوګر په ولایت کې موقعیت لري او د نړۍ دسترو کانونو له جملې څخه شمېرل کېږي.

## اضافي معلومات

### تور اورنګه فلزات

تور فلزات د اوسپنې، منګنیز، کروم، تیتان ، نادیم ،نکل ، کوبالت ، لفرام او نوروڅخه عبارت دي.
رنګه فلزات د المونیم، مس، سرب، جست، قلعی، بسیموت او سیمات څخه عبارت دي.نجیبه فلزات د سروزرو ، سپینو زرو، پلاتین ، پلادیم، ایریدیم، رودیم او داسې نورو څخه عبارت دي.د فلز کارۍ په صنعت کې د فلزاتو ظرافت او مقاومت ډېر ارزښت لري نو د فلزاتو مقاومت د زیاتوالي لپاره د بل کلک فلز سره یې ترکیبوي .
دا صنعت دلاس په واسطه هم صورت مومي چې دلاسي فلزي صنایعو په نوم یادیږي په ظریفه او سپکو صنایعو کې د فلزاتو د توږلو برخه هم شتون لري چې په ځانګړي ډول په سرو زرو ، سپینو زرو او مسو کې ډېره استعمالیږي.

# (دوه څلویښتم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| د مطلبونو شرح | سرلیکونه |
|---|---|
| **ترکاڼي او حجاري** | **د لوست موضوع** |
| **زده کوونکي دي د ترکاڼي او حجاري په اړه معلومات ترلاسه کړي.** | **عمومي موخه** |
| زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>• د لرګیو او ډبرو له صنعت سره به اشنا شي.<br>• د لوګیو او دبرو څخه ځیني شیان جوړ کړای شي.<br>• باوري شي چې له ترکاڼۍ اوحجارۍ څخه په ټولو د ودانیو کې کار اخېستل کیږي. | **پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** |
| مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... | **د لوست لارې چارې** |
| کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... | **د لوست اړین او مرستندویه توکي** |
| تحریري، تقریري... | **د ارزونې لارې چارې** |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په اند ،له لرګیو او ډبرو څخه په کومو برخو کې ګټه اخېستل کیږي ؟ | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟ | ۴۵ دقیقې |
| - د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره يي ولیکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |

| | | |
|---|---|---|
| -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهېږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشریح کوي.<br><br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د ترکاڼي او **حجارۍ** د **صنعت** په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.<br><br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- ترکاڼ له لرګیو څخه صندوقونه ، دروازې ،کړکۍ ، میزونه ، څوکۍ ، الماري اوداسې نور شیان جوړوي.

۲- د لرګیو په صنعت کې د نورستان ولایت ډېر مشهور دی.

۳- زموږ په هېواد ماهر ډبرې توږوونکي د مرمر ډبرو او د رخام له ډبرو څخه د ودانیو زینتي مختلفې ډبرې د لوښو ډولونه لکه: پیاله ،ګیلاس، چای جوش او نور شیان لکه: میز، څوکۍ او داسې نور جوړوي چې د هېواد په دننه اوبهر کې ښه بازار لري.

## اضافي معلومات

**حجاري او نجاري**

**حجاري او نجاري ( سنګ تراشي او ترکاڼي) په افغانستان کې له ډېرو پخوا زمانو څخه دود وه، افغانستان په سویل او ختیځ کې د لرګیو لکه ارچه، چهارمغز او ښکلي رنګه تیږو د لرلو له کبله او دحجارۍ او نجارۍ له پلوه په دننه او بهر کې زیات شهرت درلود، اوس خلک د خپلو اړتیاوو د لیرې کولو په خاطر د لرګیو شیان لکه کړکۍ، دروازې، میزونه، څوکۍ او الماري جوړوي او د حجارۍ په برخه کې هم تولیدات لري.**

## (درې څلويښتم) لوست

## وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | سوداګري |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي د هيوادد سوداګرۍ په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:.<br>• د سوداګرۍ په مفهوم به پوه شي.<br>• سوداګريزو مهارتونو سره به بلد شي.<br>• د بهرنۍ او کورنۍ سوداګري ترمنځ به توپير وکړای شي.<br>• باوري شي چې سوداګري د اسلام د سپيڅلي دين له پلوه حلال کسب دی. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>ـ ستاسو په اند، سوداګري د هېواد په اقتصادکې څه ونډه لري؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي . | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| پرې نه پوهیږي له ځان سره يې وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د سوداګرۍ په اړه خپلو منځو کې خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- دګټې په موخه د مالونو اخېستل او پلورولو ته سوداګري وايي.

۲- زموږ د هېواد سوداګري پرکرنيزو محصولاتو، د مالدارۍ په توليداتو او لاسي صنايعو ولاړه ده .

۳- زموږ د هېواد صادرات وچې او تازه مېوې ، طبي بوټي، وړۍ، پوستکي، قره قل پوستکي، غالي او داسې نور دي .

## اضافي معلومات

**د افغانستان سوداګري**

د لرغونو زمانو را هېسې خلک د خپلو اړتياوو د لرې کولو لپاره اړ وو چې خپل توليد شوي توکي په نورو وپلوري او په مقابل کې خپل د اړتيا وړ توکي له نورو څخه لاس ته راوړي. ددې عملېې په لړ کې اخېستل، پلورل ، عرضه تقاضا منځ ته را ځي.نو له همدې سببه سوداګي د پلورلو ، پېرېدلو ،د عرضې او تقاضا څخه عبارت ده .

سوداګري پر دوه ډوله ده داخلي او بهرنۍ سوداګري . په دننۍ سوداګرۍ کې د خلکو ترمنځه پلورل او پېرېدل دهېواد په د ننه کېږي او په بهرنۍ سوداګرۍ کې اضافي توليدات د هېواد څخه بهر لېږل کېږي او په مقابل کې د اړتيا وړ شيان له بهره واړل کيږي. هر څومره چې د هېواد صادرات ډېر او واردات لږ وي په هم هغه اندازه د هېواد اقتصاد ښه او بهرني اسعار(پېسې) هېواد ته راوړل کېږي. د افغانستان صادرات کرنيزه محصولات لکه : تازه او وچې مېوې، طبي بوټي او د مالدارۍ په برخه کې څرمنې ، قرقلي پوستکي، وړۍ او د لاسي صنايعو په برخه کې غالي، تغر او نور ګنډل شوي او او اوبدل شوي شيان وه خو د جګړو په سبب دصادراتي توکي لږ شوي او وارداتو زياتوالی کړی دی.

# (څلور څلويښتم) لوست

## وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | داخلي سوداګري |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي د هيواد د داخلي سوداګرۍ په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>• د داخلي سوداګرۍ لارې چارې و پېژني.<br>• د هېواد د صادراتي او وارداتي توکو ترمنځ تفکيک وکړای شي.<br>• باوري شي چې د ملي صنايو د ودې لپاره د داخلي صنعتي توليداتو څخه ګټه اخېستنه اړين ده. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په اند، داخلي سوداګري دهېواد په اقتصاد کې څه اهميت لري؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يي وليکي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي . | ۴۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشریح کوي.<br><br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د داخلي سوداګرۍ په اړه خپلو منځو کې خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي | -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- داخلي سوداګري نه یوازې ښارونه یو له بله سره نښلوي ؛ بلکې د هېواد د قومونو او قبایلو تر منځ هم ټولنیزې ، فرهنګي او اقتصادي اړیکي ټینګوي.

۲- سوداګر د کلیو څخه د کرنې، مالدارۍ محصولات او لاسي صنایع ښارونو ته راوړي او د ښارونو څخه د کلیوالو د اړتیا وړ شیان وړي.

۳- ځواب ازاد دی.

## اضافي معلومات

### داخلي سوداګري

د هېواد په دننه کې د خلکو د اړتیاوو لرې کولو لپاره د کرنیزو، مالدارۍ او د صنعتي تولیداتو اخېستل او پلورل دي. دا سوداګري د داخلي سوداګرو په لاس کیږي او د پانګې اچونې او د کارنو د پېدا کېدنې لپاره یې ښه شرایط برابرکړي او دملي اقتصاد په ښه والي کې هم غوره رول لوبوي. داخلي سوداګري نه یوازې داچې ښارونه سره نږدې کوي بلکې د خلکو ترمنځ کلتوري او فرهنګي اړیکو ته هم پراختیا ورکوي.

# (پنځه څلویښتم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | بهرنی سوداګري |
| **عمومي موخه** | **زده کوونکي دي د بهرنی سوداګری په اړه معلومات ترلاسه کړي.** |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې.** | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>• په افغانستان کې د بهرنی سوداګری په تاریخچه به پوه شي.<br>• د هېواد د بهرنی سوداګری سره اشنا شي.<br>• د بهرنی سوداګری ښې لارې و پېژني.<br>• په لرغونو زمانو کې دبهرنی سوداګری د مهمو لارو نومونه واخېستلای شي.<br>• باوري شي چې سوداګري د رزق دلاس ته راوړلوحلاله لار ده. |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړین او مرستندویه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په اند، بهرنی سوداګري څه ارزښت لري؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یي ولیکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د صادراتو او وارداتو په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي | - له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د هېواد مهم صادراتي توکي د پومبې، وچې او تازه مېوې ، څرمنې ، قرقلي پوستکي، وړۍ، طبي بوټي، د لاسي صنایعو محصولات او داسې نورو څخه عبارت دي.

۲- بهر هېوادونو ته د خرڅلاو لپاره د کالیو او توکو لېږلو ته صادرات ویل کیږي.

۳- د وارداتي توکو د وارداتو د کابو کولو لپاره باید داخلي تولیدات زیات شي او وطنوال هم باید له داخلي تولیداتو څخه ګټه واخلي.

## اضافي معلومات

### تجارت خارجی افغانستان

د افغانستان بهرنۍ سوداګري(صادرات او واردات ) کله چې په یوه هېواد کې د کرنې ، مالدارۍ محصولات ، صنعتي او کاني تولیدات کورنۍ اړتیاوي پوره نه کړي نو هغه هېواد اړ دی چې د خپلو اړتیاوو وړ توکي له بهرنیو هېوادونو څخه را وړي، نوموړو راوړل شوو توکو ته واردات ویل کیږي. خو صادرات بهرنیو هېوادونوته د اضافي محصولاتو لېږلو ته ویل کیږي. پخوا افغانستان زیات توکي بهر ته صادرول خو د جنګ جګړو په سبب اوس واردات ډیر او صادرات لږ شوي دي.

# (شپږ څلویښتم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د هېواد بندرونه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د هېواد د بندرونو په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>• د بندرونو په مفهوم پوه شي.<br>• د هېواد د بندرونو له ارزښت سره اشناشي.<br>• د هېواد د سیاسي نقشې پرمخ د بندرونو موقعیتونه تثبیت کړي.<br>• باوري شي چې بندرونو د صادراتو او وارداتو قانوني لاره ده. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- کله هم د هېواد له بندرونو څخه تېرشوي یاست ؟<br>- د نوي لوست سرلیك پرتخته لیکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیك ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کېږي او له لارښوونې سره | ۴۵ دقیقې |

| هېواد د بندرونو په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي | سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
|---|---|---|

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

١- د هېواد مهم بندرونه حيرتان، اقينه، اى خانم، شيرخان، تورغندی، اسلام کلا، رزنج، تورخم، غلام خان او سپين بولدک څخه عبارت دي.

٢- د تورغندی بندر د هرات په سرحدي کرښه کې د افغانستان او ترکمنستان د جمهوريتونو ترمنځ موقعيت لري چې زموږ هېواد د منځنۍ آسيا له هېوادونو سره نښلوي.

٣- د تورخم بندر زموږ هېواد د پاکستان او هندستان له هېوادونو سره د وچې له لارې نښلوي او دکراچۍ له بندر له لارې زموږ هېواد له اروپايي، آسيايي، افريقايي، استراليا، او امريکايي ساحلي هېوادونو سره نښلوي يعنې ډېر با ارزښته سوداګريزه بندر شمېرل کېږي.

## اضافي معلومات

**بندرونه**

١- د حيرتانو بندر:د حيرتانو کوچنی ښار د افغانستان د بلخ د ولايت او ازبکستان د هېواد په سرحدي برخه کې د آمو دسيند په غاړه موقعيت لري. د هېواد د مهمو سوداګريزو بندرونو څخه شمېرل کيږي.

٢- د آقينې بندر: دا بندر د فارياب ولايت په اندخوی ولسوالی کې د ترکمنستان د هېواد سره په سرحدي برخه کې موقعيت لري. ددې بندر له لارې د منځنۍ آسيا، اروپايي، ايران او چين د هېوادونو څخه وارديږي.

٣- د آی خانم بندر: ددې بندر دګمرک د ودانيو د جوړونې کار به ډېر ژر د تخار د ولايت د شت کلا په ولسوالی کې د آمو او کوکچې د سيندونو د يوځای کېدو په سيمه کې پيل شي. دا بندر دهېواد په شمال ختيځ کې يو مهم بندر دی.

**٤- شيرخان بندر:** دا بندر د افغانستان او تاجکستان ترمنځ د هېواد په شمال، دکندز په ولايت کې د آمو سيند په غاړه جوړ شوی دی.

**٥- د تورغنډۍ بندر:** دا بندر افغانستان له ترکمنستان سره نښلوي او د ظاهرشاه د واکمنۍ په وروستيو کې جوړشو.

**٦- د اسلام کلا بندر:** د هرات ولايت په کهسان ولسوالی کې د ايران او افغانستان په سرحدي سيمه کې موقعيت لري.

**٧- ابونصر فراهي بندر:** د افغانستان په فراه ولايت کې د افغانستان او ايران ترمنځ ګډه پوله کې پروت دی .

**٨- د نيمروز د وريښمين پُل بندر( بندرپل ابريشم نيمروز):** دا بندر د افغانستان په نيمروز ولايت کې موقعيت لري.

**٩- د سپين بولدک بندر:** سپين بولدک ښار د افغانستان د کندهار ښار په سويل کې د پاکستان سره د ديورند سرحدي کرښې په غاړه موقعيت لري.

**١٠- د غلام خان بندر:**د خوست په ولايت په سرحدی سيمه کې موقعيت لري..

**١١- دتورخم بندر:** افغانستان وچې پورې تړلی هېواد دی؛ نو د سوداګريزو مالونو د لېږد را لېږد لپاره ترانزيتي او سمندري تودو اوبو بندرونو ته اړتيا لري. د افغانستان تورخم او سپين بولدک بندرونه د پاکستان او افغانستان ترمنځ د سوداګريزو مالونو ترانزيتي مهمې لارې دي.

## (اوه څلویښتم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| د مطلبونو شرح | سرليکونه |
|---|---|
| د ژوند چاپېریال | د لوست موضوع |
| زده کوونکي دي د ژوند چاپېریال وپېژني. | عمومي موخه |
| زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>• د ژوند د چاپېریال په مفهوم به پوه شي.<br>• د ژوند دچاپېریال ګټې به بیان کړای شي.<br>• د ژوند د چاپېریال له پاکوالي سره به یې مینه پیدا شي. | پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. |
| مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... | د لوست لارې چارې |
| کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... | د لوست اړین او مرستندویه توکي |
| تحریري، تقریري... | د ارزونې لارې چارې |

| وخت | د زده کوونکوفعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵ دقیقې | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي. | - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، انسانان ولې د خپل ژوند د چاپېریال د پاک ساتلو کوښښ کوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یي ولیکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| - له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د ژوند د چاپېریال د پاکوالي او نظافت په اړه خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي | - په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کېږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- په هر هغه ځای کې چې ژوند چارې جریان و لري د ژوند چاپېریال ورته ویل کېږي.

۲- د ژوند نا پاکه چاپېریال د ډول ډول ناروغیو لامل ګرځي.

۳- فاضله توکي، لوګي، د بېلابېلو ډېرانونو خاورې او د دوړې د ژوند د چاپېریال د ناپاکۍ او د ډول ډول ناروغیو لامل ګېږي.

## اضافي معلومات

**د ژوند چاپېریال**: د ژوند چاپېریال، د ژوندیو موجوداتو د اوسیدلو ځای ته ویل کېږي چې د ژوندي او غیر ژوندي موجودات پکې راځي، د هغوی خواوشایي نیولي دي او په یوه ډول پرې اغیزه کوي.

**د ژوند د چاپېریال ډولونه:**

۱- د ژوند طبیعي چاپېریال: هغو چاپېریالو ته طبیعي ویلای شو چې د بشر لاس په هغې نه وي لګېدلي او په طبیعي حالت کې پاتې ویو لکه: ونې، ځنګلونه، دښتي، غرونه، چمنونه، سیندونه، خلیجونه، تالابونه، بحیرې دا ټول طبیعي چاپېریالونه دي، په دې شرط چې د انسان لاس د هغې د دوی خپل اصلي ماهیتا بدل کړی نه وي.

۲- غیر طبیعي چاپېریال: هغه چاپېریال چې د انسان د لاس وهنې له کبله یې خپل طبیعي ماهیت له لاسه ورکړي وی. او د انسان د تفکر او فرهنګ پر اساس یې حالت بدلون موندلی وی، مصنوعي چاپېریال ورته ویل کېږي. د بشر لاس وهنه کېدلی شي چې وراونوونکې وي او یا جوړوونکې. د کورونو جوړولو او نور چارو لپاره د ځنګلونو وهل، د څرځایونو او د چاپېریال د سمسورو ځایونو له منځه وړل ټول په چاپېریال کې ویجاړوونکي لاس وهنه ګڼل کېږي، په داسې حال کې چې د اوبو د نهرونو او کانالونو په غزولو سره وچې او بې اوبو دښتې په زراعتي فارمونو، باغونو او به شنو سیمو بدلې شوي دی، د بشر د جوړوونکو فعالیتونو په شمېر کې راځي. هر څومره چې د ژوند په چاپېریال کې د بشر لاس ونه زیاته شي به هماغه کچه چاپېریال خپل طبیعي حالت له لاسه ورکوي. نن ورځ په چاپېریال کې د بشر غټې لاس وهنې، د ژوندي، ژوو په زیان تمامې شوې دي.

# (اته څلویښتم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | اقليم |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي د اقليم په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>• اقليم تعريف کړای شي.<br>• داقليمي نقشې پرمخ د نړۍ بيلابيلې اقليمي سيمې سره تفکيک کړي.<br>• د کال په څلورو موسمونو کې د مختلفو اقليمي سيمود بدلونونو لاملونه توضيح کړي.<br>• باوري شي چې هره اقليمي سيمه ځانګړي نباتات او ځاروي لري. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>-ايا ويلای شئ چې ستاسو د سيمې هوا څرنګه ده ؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهيږي له ځان سره يي وليکي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي . | ۴۵ دقيقې |

| -کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د د اقلیم د ځانګړتیاو و په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي | -کوم لغتونه او اصطلاحگانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کېږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
|---|---|---|

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د یوې سیمې د هوا د بدلونونولکه: د تودوخې درجه، اورښت، رطوبت او داسې نورو منځنی حد دی چې د دېرشو څخه په زیاتو کلونو کې تکرار شي.

۲- د ځمکې پرمخ مختلف اقلیمونه لکه: معتدله، قطبي ، غرنی، صحرایي، نیمه صحرایي، مدیترانه یي او داسی نور و جود لري

۳- په صحرایي اقلیمي سیمه کې دکال په اوږدو کې ډېر لږ باران اوري.

## اضافي معلومات

### اقلیم

د یوې سیمې د هوا د بدلونونولکه: د تودوخې درجه، اورښت، رطوبت، فشار، د بادونو د بهیر او داسې نورو منځنی حد دی چې د دېرشو څخه په زیاتو کلونو کې تکرار شي. اقلیم پر نباتاتو، دحیواناتو پرډولونو او همدارنگه پر ورځنیو اقتصادي فعالیتونو ، کلتور ، دپوستکي درنګ او ودانیو پر بڼه هم اغیزې لري.

د اقلیم اساسي موخه د لمر د شعاع د مېلان مطالعه کول دي چې د بېلا بېلو سیمو په مختلفو وختونو او موسومونو کې په مختلفو زواویو لګیږي

## (نه څلوېښتم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د افغانستان اقلیم |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي د افغانستان د اقلیم په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>• د اقلیمونو د بدلونونو لاملونه دې ووایي.<br>• د هېواد د اقلیمي نقشې پرمخ مختلف اقلیمي سیمې دي سره تفکیک کړي.<br>• د کال په څلورو موسمونو کې د اقلیمي بدلونونو لاملونه توضیح کړي.<br>• باوري شي هره اقلیمي سیمه ځانګړي نباتات او حیوانات لري. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>– فکر وکړئ، ستاسو د سیمې هوا څرنګه ده ؟<br>– د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>–د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>– زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره یې ولیکي.<br>–کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او | – زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>– د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>–کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي | ۴۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د هیواد د اقلیم په اړه په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي | په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د افغانستان د ننگرهار، لغمان او کونړ ولایتونه مدیترانه یي اقلیم لري.

۲- د افغانستان سویل لویدېځې سیمې لکه: فراه، لشکرگاه او نیمروز صحرایي اقلیم لري.

۳- د هېواد شمالي ولایتونه نیمه صحرایي اقلیم لري، یعنې دوبی یې وچ او تود او ژمې یې سوړ او واورې لري

## اضافي معلومات

**صحرایي اقلیم:** د هېواد سویل لویدېځې سیمو کې لکه: گرشک، نیمروز او د فراه ولایت سوېلي برخو کې حاکم دی. دلته اورښت ډېر لږ اوري، د شپې او ورځې د تودوخې د درجې توپیر ډېر زیات دی یعنې ورځ ډېره توده او شپه یې سړه وي. تودوخه زیاته او لږ اورښت ددې سیمې د ځانگړتیاوو څخه ده.

**غرنی اقلیم:** ارتفاع د اقلیم په بدلون کې ټاکلی رول لري. د همدې لامل په سبب غرنی ځانگړی اقلیم منځ ته راغلی دی. د هوا تودوخه په هرو زرو مترو لوړوالي کې شپږ درجې را کښته کیږي . سړه هوا ، واورې او بارانونه زیاتیږي. د هېواد مرکزي برخې او د هندکش غرونه غرنی اقلیم لري.

**مونسوني اقلیم:** د هېواد ځینې سیمې لکه: پکتیا او خوست.مونسوني اقلیم لري.په دې سیمو کې د اوړي هم باران اوري. ددې ولایتونو نمجنه هوا د ارچې، بلوط او جلغوزیود ونو له ودې لپاره ډېره برابره ده. دا سیمې د اوړي په موسم کې د هند سمندر د مرطوبو بادونو تر اغیزې لاندې راځي او د اورښتونو سبب کیږي. د ستیپي ( د وښولرونکو) **سیمو اقلیم:** په دې سېمو کې اورښت زیاتره د ژمي په موسم کې کیږي. په دې سیمو کې واښه ډېره وده کوي. په دې اقلیمي سیمه کې د بغلان، کندز، فاریاب، پروان، کاپیسا، کابل او هرات ولایتونه شامل دي.

**د تندرا اقلیم:** هغه سیمه چې هلته ځنگلونه او ونې وده نه کوي او هلته نباتات د وښواو بوټو په بڼه وي.په دې سیموکې ډېرې واورې اوري ژمې یې سوړ او اوږد او اوړی یې معتدل او لنډ وي، لکه: د پامیر سیمه په بدخشان کې ، ناور سیمه په غزني کې، د هندوکش لوړې برخې او داسې نورې سیمې دي.

## (پنځوسم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د برېښنا تولید |
| عمومي موخه | زده کوونکي دي د برېښنا د تولید په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>• د برېښنا انرژۍ تعریف کړای شي.<br>• د هېواد دطبیعي نقشې پرمخ د سېندونو د پاسه د بندونو موقعیتونه په نښه کړي.<br>• باوري شي چې زموږ هېواد غرنی دی او د زرګونو کیلو واټو انرژۍ د تولید لپاره برابر دی چې نه یوازې داخلي اړتیاوې به پوره کړي بلکې د برېښنا په صادرونکي هېواد به هم تبدیل شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- څه فکر کوئ، **برېښنا څرنګه تولیدیږي ؟** | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟ | ۴۵ دقیقې |
| - د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| -د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غور سره غوږ نیسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې | - له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |

| | | |
|---|---|---|
| پرې نه پوهیږي له ځان سره يې وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له ځو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د هیواد **د برېښنا د تولید په** په اړه په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- خلکو له پخوا د اوبو څخه ، د ژرندو ، پايکوبګانو د ګرځېدلو ، د او دبرښنا د تولید تورښیونو څخه ګټه اخېسته.

۲- له او بو څخه پرته له څښلو د کرنې لپاره د برښنا د انرژی لپاره ، د صنعتی ماشینونو د سړوا او لیږد رالیږد لپاره ګټه اخستله کیږي.

۳- څرنګه چې زموږ هېواد غرنی دی او سیندونه يې په ځوړي بهیږي، نو د برښنا دتولید لپاره برابر دي د بندونو په جوړولو سره دبرښنا توربینونه پکې ایښودل شوی دي. او دبرښنا څخه يې ګټه اخستله کیږي.

**اضافي معلومات**

- د اوبو د بندونو د جوړونې موخې ممکن سره توپیر ولري، خوزیاتره بندونه د څو موخو لپاره جوړیږي، لکه :د اوبه خور، د ښاري سیمو ته د څښلو اوبو د برابرولو، د بریښنايي انرژۍ د تولید ، د تفریحي سیمو د جوړونې، د سیلاوونو د کنترول، د کبانوروزنې او داسې نورې موخو لپاره.

- افغانستان پخوا (۷۳۷)میګا واټه برېښنا تولیدوله خو د داخلي شخړو په سبب ۴۵۴ میګاواټو ته را کښته شوه او اوس۲۵۰-۳۰۰ میګا واټه داخلي تولید او ۵۰۰ میګا واټه له بهر څخه وارديږي.

- د افغانستان فعال بندونه عبارت دي له: کجکي د هلمند په ولایت کې، د ماهیپر، نغلو، سروبې او درونټې بندونه د کابل – جلال آباد د سړک په اوږدو کې، د سلما بند د هرات په ولایت کې، چک بند د مېدان وردک په ولایت کې، د جبل السراج بند د پروان په ولایت کې او د پلخمري بند د بغلان په ولایت کې دي. دا بندونه د هېواد د اړتیآوو ۱۰ سلنه پوره کوي. په دې ورستیو کې یوشمېرنورې پروژې هم تر لاس لاندې دي چې د برېښنا اړتیاوې به تریوه حده پوره کړي.

## (یوپنځوسم) لوست

## وخت : (یو درسي ساعت)

| د مطلبونو شرح | سرليکونه |
|---|---|
| **د افغانستان کانونه او طبيعي زېرمې** | **د لوست موضوع** |
| **زده کوونکي دي د افغانستان د کانونو او طبيعي زېرمو په اړه معلومات ترلاسه کړي.** | **عمومي موخه** |
| زده کوونکي دي د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>• کانونه او طبيعي زېرمې تعريف کړای شي.<br>• د اقتصادي نقشې پر مخ د کانونو او طبيعي زېرمو موقعيتونه وټاکي.<br>• باوري شي چې زموږ هېواد د کانونو دشمېر، اندازې ، جنسيت او د طبيعي زېرمو له پلوه د نړۍ د ډېرو غني هېوادونو له ډلې شمېرل کېږي. | **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** |
| مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... | **د لوست لارې چارې** |
| کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... | **د لوست اړين او مرستندويه توکي** |
| تحريري، تقريري... | **د ارزونې لارې چارې** |

| وخت | د زده کوونکوفعاليتونه | د ښوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| **۴۵ دقيقې** | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي . | - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په اند د افغانستان مهم کانونه کوم دي ؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>-د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي، کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې |

| | | |
|---|---|---|
| پرې نه پوهېږي له ځان سره يي وليکي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې زده کوونکي پرې نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشريح کوي.<br><br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، چې د افغانستان دکانونه او طبيعي زېرمو په په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | -کوم لغتونه او اصطلاحګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د هېواد د نفتو او ګازو زېرمې په تخار، کندز، جوزجان، فارياب، بادغيس، هرات ولايتونو او د هېواد په سويلي ولايتونو کې هم پېدا شوي دي.

۲- د مرمر او رخام ډبرې د غزني ولايت په جاغوري کې ، ننګرهار، هلمند، کندهار، کابل، وردګ، د پروان ولايت په غوربند دره کې او د هېواد په نورو سيمو کې شته دی.

۳- زموږ په هېوادکې د ډبرو سکرو څخه د حرارت او تودوخې لپاره ګټه اخېستل کيږي.

## اضافي معلومات

**د هېواد کانونه**: افغانستان دکانونو دشتون له پلوه غني هېواد دی خو د دې زېرمو او کانونو څخه په فني توګه ګټه نه ده اخېستل شوې. په ځينو سيمو کې له پخوا زمانو را هېسې يو شمېر کانونو په غير فني توګه را اېستل شوي دي.

.تر اوسه په افغانستان کې د فلزاتو ۳۰۰ کانونه پېژندل شوي دي چې د هېواد په زياترو سيمو کې شتون لري. لکه: د مسو ۱۲ کانونه ، دسروزرو ۴ کانونه، د سپينو زرو ۵ کانونه، دکروم ۱۴کانونه ، د سرپو او جستو۸ کانونه ،د موليبدين ۴ کانونه، دا لمونيمو ۷ کانونه ، داوسپنې ۸۹ کانونه نور فلزاتو سره ګډ دي، د قلعي او نکلو کانونه هم په دې هېوادکې پېژندل شوي دي.